# عمر څنګه اوږد کړو؟

ځنګه کولای شو خپل لنډ عمرد الله تعالی
په وړاندې زرګونه کاله کړو؟



لیکنه: شیخ محمد بن ابراهیم النعیم
ژباړه: ډاکټر عبدالمتین متین

**کتاب پېژندنه**

| | |
|---|---|
| نوم: | عمر څنګه اوږد کړو |
| لیکنه: | شیخ محمدبن ابراهیم النعیم |
| فارسي ژباړه: | عبدالله ریګی احمدی |
| پښتو ژباړه: | ډاکټر عبدالمتین متین |
| کمپوز: | عبداللطیف نرم |
| خپرندوی: | مومند خپرندویه ټولنه |
| چاپ شمېر: | ۱۱۰۰ ټوکه |
| چاپ کال: | ۱۳۹۲هـ ش/لرم. |

د مومندلو ځایونه

# لړلیک

## لومړی برخه



## دوهمه برخه

### همېشنی کړنې

# عمر څنګه اوږد کړو؟

**إن الحمدلله نحمده و نستعينه و نستغفره و نعوذ بالله من شرور أنفسنا و من سيئات أعمالنا من يهده الله فلا مضل له و من يضلله فلاهادی له و أشهد أن لاإله إلاالله وحده لاشريک له و أشهد أن محمّداً عبده و رسوله.** امابعد:

په لاس کې کتابګوټي مو د ځينو هغو اعمالو ټولګه ده چې ډېر زيات اجرونه لري او که ټينګار ورباندې وکړئ، د خپل عمر پايله به مو زرګونه کاله زياته کړئ.

په دې کتابګوټي کې به د رسول الله (ﷺ) د هغو ډېرو احاديثو اهميت راته څرګند شي چې ډېر وخت مو لوستي او اورېدلي دي، خو پام مو نه دی ورته کړی، خپله لټي به راته څرګنده معلومه او په پايله کې به د الله (ﷻ) د هغه نعمت او ښښنې په لور مخه کړو چې په مرسته يې کولای شو خپل لنډ عمر اوږد کړو.

رسول اکرم (ﷺ) فرمايي:

**(اعمار امّتی ما بين السّتّين و السبّعين و أقلّهم من يجوز ذلک)**

ژباړه: زما د امتيانو عمر د شپېتو او اويا کلونو ترمنځ دی او کم کسان به يې له همدې څخه پورته شي.[1]

د بېلګې په توګه دوه کارګران ښار ته ځي، د هغه ښار د کارګرانو مياشتنی معاش لس زره افغانۍ دی. يو يې په همدې معاش کار کوي، دوهم يې له يو څه هڅې وروسته

---

١- ترمذي (٢٥/٣) تحسين سيوطي، مناوي.

داسي کار پیدا کوي چې شل زره افغانۍ میاشتنی معاش ولري. د کال په پای کې دواړه په داسي حال کې خپل ښار ته راګرځي چې لومړي یې ۱۲۰ زره او دوهم یې ۲۴۰ زره افغانۍ لري.

اوس پوښتنه دا ده چې انسان څنګه کولای شي خپل ۵۰-۶۰ کلن عمر یې د الله تعالی (ﷻ) په وړاندي لس او یا سل زره کلونه وشمېرل شي ؟

په ځواب کې باید وویل شي چې دوې لاري لري:

۱- ژر تر ژره داسي کارونه وکړي چې څو چنده زیات اجر او ثواب ولري.

۲- داسي نیک کارونه وکړي چې اجر او ثواب یې له مرګه وروسته هم دوام ولري.

اوس پورته دواړه ډوله اعمال چې په دوو ډلو وېشل شوي څیرو:

څو تر هر څه وړاندي باید نیتونه صاف، د اعمالو د فضایلو په لټه کې شو او په دوام دار ډول یې د ستړیا پرته تر سره کړو.

اوله برخه

# هغه اعمال چې څو چنده ثواب لري

اول ډول

## لمونځ

### ۱- په حرمینو شریفینو کې ډېر لمونځ کول:

په حرم شریف کې یو رکعت لمونځ د نورو ځایونو د لمانځه د سل زره رکعتونو سره برابر دی.

جابر بن عبدالله ﴿رضي الله عنه﴾ له حضرت رسول اکرم ﴿صلی الله علیه وسلم﴾ څخه روایت کوي چې هغه ﴿صلی الله علیه وسلم﴾ وفرمایل:

**﴿صلاة فی مسجدی هذا أفضل من ألف صلاة فیما سواه إلا المسجدالحرام و صلاة فی مسجدالحرام أفضل من مأة ألف صلاة فیما سواه﴾**(۱)

ژباړه: زما په مسجد (مسجد نبوي) کې یو لمونځ په نورو مساجدو کې د زرو لمونځونو څخه غوره دی. پرته له مسجد الحرام څخه چې په هغه کې لمونځ سل زره ځله د نورو لمونځونو څخه غوره دی.

که تاسو په خپل ښار او کور کې هره ورځ دوولس رکعته سنت لمونځ په دوامدار ډول وکړئ، نو په کال کې به مو (۴۳۲۰) رکعته لمونځ کړی وي.

خو په مسجد الحرام کې دوه رکعته لمونځ دوه سوه زره رکعته کیږي، چې دا ستر ثواب یوازي په څو شېبو کې تر لاسه کوئ. په داسي حال کې چې که وغواړئ له حرم شریف څخه پرته دا ډول ثواب تر لاسه کړئ، نو باید څلوېښت کاله او درې میاشتي هره ورځ ورځني دولس رکعته لمونځ وکړئ.

## ۲- په جماعت سره لمونځ کول

له ابو هریره ﴿رضي الله عنه﴾ څخه روایت دی چې رسول اکرم ﴿ﷺ﴾ وفرمایل:

﴿صلاة مع الإمام أفضل من خمس و عشرين صلاة يصلّيها وحده﴾ (۲)

ژباړه: له امام سره (په جماعت) لمونځ کول پنځه ویشت ځله له هغه لمانځه څخه غوره دی چې یوازي وکړل شي.

د ابن عمر ﴿رضي الله عنه﴾ په روایت کې راغلي چې رسول اکرم ﴿ﷺ﴾ وفرمایل:

﴿د جماعت لمونځ د یوازي لمانځه څخه اووه ویشت ځله غوره دی﴾ بخاري

اوس داسي فرض کړئ چې دوه مسلمان نارینه په یوه وخت پیدا شوي دي او په یوه وخت وفات شوي. یوه هر وخت په جماعت سره لمونځ کړی او بل یوازي.

هغه کس چې په جماعت سره یې لمونځ کړی اووه ویشت ځله یې د هغه بل څخه زیات لمونځ کړی دی معنی دا چې د لومړي کس عمر اووه ویشت ځله د دوهم څخه زیات دی.

---

۲- صحیح مسلم

**۳- د سهار او ماخوستن لمونځ په جماعت سره کول.**

لـه حضـرت عثمـان بـن عفـان (رضي الله عنه) څخـه روايـت دي چـې رسـول اکرم (صلی الله علیه وسلم) وفرمايل:

«من صلّى العشاء فى جماعة كان كقيام نصف ليلة و من صلّى العشاء و الفجر فى جماعة كان كقيام ليلة» (مسلم)

ژبـاړه: هـر څـوک چـې د ماخوسـتن لمـونځ پـه جماعـت سـره وکـړي د نيمـي شـپې د قيـام ثـواب ورتـه رسـيږي او کـه د سـهار او ماخوسـتن لمونځونـه پـه جماعـت سـره ادا کړي، لکـه ټولـه شپه چې يې قيام کړی وي.

**۴- په کور کې نفل لمونځ کول**

لـه صـهيب رومـي (رضي الله عنه) څخـه روايـت دی چـې رسـول اکـرم (صلی الله علیه وسلم) وفرمايل:

«صلاة الرّجل تطوعاً حيث لا يراه النّاس تعدل صلاته على أعين النّاس خمساً و عشرين» مسند ابو علي

ژباړه: د سړي نفل لمونځ په داسي حال کې چې بل ځوک يې ونه ويني پنځه ويشت ځله د هغه نفل لمانځه څخه غوره دی چې د خلکو په وړاندي وشي.

په يوه بل حديث کې فرمايي:

«فضل صلاة الرّجل فى بيته على صلاته حيث يراه النّاس كفضل الفريضة على التطوع» [۳]

---

[۳]- بيهقي شعب الايمان (۱۷۳/۳).

ژباړه: د هغه لمانځه (له فرضو پرته) غوره والی چې په کور کې وکړل شي په هغه باندي چې د خلکو په وړاندي وي داسي دی لکه د فرضو په نفلو باندي.

## ۵- د جمعې د ورځې لمونځ

د رسول اکرم ﴿ﷺ﴾ څخه د جمعې د لمانځه اړوند بېلا بېلې کړنې او آداب نقل شوي دي چې هر مسلمان یې باید زده کړي تر څو یې دا ستره ورځ (چې الله تعالی ﴿ﷻ﴾ او رسول ﴿ﷺ﴾ ورته ستره ورځ ویلې ده) لمانځلې وي.

د دې روایتونو د جملې څخه د اوس بن قیس ثقفي ﴿رضي الله عنه﴾ روایت دی چې رسول اکرم ﴿ﷺ﴾ وفرمایل:

﴿من غسّل یوم الجمعة و اغتسل ثمّ بكّر و ابتكر و مشى و لم یركب ودنا من الإمام فاستمع و لم یلغ كان له بكلّ خطوة عمل سنةٍ أجر صیامها و قیامها﴾ (۴)

ژباړه: هر څوک چې د جمعې په ورځ غسل وکړي، په اول وخت کې، پیاده مسجد ته لاړ شي او له امام سره نژدې کښېني او خطبو ته غوږ ونیسي او په دې وخت کې ناوړه کار ونکړي، د هر قدم په وړاندي چې ده اخستی دی د یوه کال د روژې او قیام ثواب ورته ورکول کېږي.

اوس نو ګرانه لږ فکر وکړه! که هره جمعه دا آداب او سنتونه مراعت کړې، نو څومره ثواب به تر لاسه کړې.

---

[4] - احمد، ابوداود، ترمذي، ابن حبان.

که د بېلګې په ډول له کوره تر مسجده زر قدمه لار ووهي، نو د زرو کلونو روژې او قیام اجرونه به د الله (ﷻ) له خزانو څخه تر لاسه کړي، داسي کلونه چې آن یو ګناه هم پکي شتون نه لري دا یوازي د یوې جمعې د لمانځه دي که تاسو څو کاله د هري جمعې لمونځ په همدي ترتیب وکړئ خپله یې فرض کړئ چې څومره اجر او ثواب به الله (ﷻ) درکړي

۶- د څاښت لمونځ کول

له ابوذر غفاري (رضي الله عنه) څخه روایت دي چې رسول اکرم (ﷺ) وفرمایل:

«یصبح علی کلّ سلامی من أحدکم صدقة، فکلّ تسبیحة صدقة و أمر بالمعروف صدقة و نهی عن المنکر صدقة و یجزیءُ من ذلک رکعتان ترکعهما من الضّحی»(۵)

ژباړه: هره ورځ پر تاسو د بدن د هر بند په مقابل کې صدقه لازمه ده، هره تسبیح ویل صدقه ده. په ښو کارونو امر کول صدقه ده، له بدو کارونو منع کول صدقه ده او د څاښت دوه رکعته لمونځ ددې ټولو لپاره بس دی.

ګرانه لوستونکیه! پوهېږې چې د انسان په بدن کې ۳۶۰ بندونه شتون لري، نو که د رسول اکرم (ﷺ) د وینا مطابق وغواړې چې هره ورځ د هر بند صدقه ادا کړې نو باید ۳۶۰ صدقې وکړې، ایا څوک کولای شي دومره درنه صدقه وکړي؟ خو تاسي کولای شئ هره ورځ د څاښت د دوو رکعتوو لمانځه په کولو سره د بدن د ټولو بندونو صدقه ورکړئ.

---

۵- مسلم او ابو داود

# حج او عمره

حج په کال کې یو ځل ادا کیږي او هر مسلمان دا هیله لري چې هر کال یې ادا کړي.که څوک واقعاً وکولای شي چې هر کال حج وکړي بیا به یې هم د حجونو تعداد د خپل عمر تر کلونو زیات نه شي، څو نوري لاري شتون لري چې کولای شې د خپل عمر څو چنده حجونه او عمرې پکې وکړئ، چې څو یې په لاندې ډول دي:

**۱- د امکان په صورت کې هر کال یو یا څو کسه په خپل مصرف حج ته واستوئ** مثلاً که وکولای شئ په یوه کال کې درې کسه حج ته واستوې، نو د دریو حجونو ثواب کټې او معنی دا چې درې کلونه ستاسي په عمر کې زیات شول.

**۲- د اشراق لمونځ**

له انس بن مالک «رضي الله عنه» څخه روایت دی چې رسول اکرم «صلی الله علیه وسلم» وفرمایل:

**«من صلّی الغداة فی جماعة ثمّ قد یذکر الله حتّی تطلع الشّمس ثمّ صلّی رکعتین کانت له کأجر حجّة و عمرة تامة تامة تامة» (۲)**

ژباړه: که څوک د سهار لمونځ په جماعت سره ادا کړي او تر لمر راختلو پوري کښېني، ذکر او تسبیح وکړي او بیا دوه

---

۲- ترمذي ۲۸/۳.

رکعته لمونځ وکړي، نو د هغه لپاره د یوه حج او عمرې ثواب ورکول کیږي.

نو که تاسو په اونۍ کې یو ځل د اشراق لمونځ وکړئ، په میاشت کې څلور ځله کیږي او د څلورو حجونو او عمرو ثوابونه تر لاسه کوئ او معنی دا چې څلور کاله مو عمر اضافه شو او څلور حجونه مو پکې وکړل.

**۳- په دیني مجالسو او د مسجد په درسونو کې کښیناستل**، په مساجدو کې مو شتون او په هر درس کې برخه اخستل مو د یوه حج ثواب لري لکه څنګه چې ابو امامه ﴿رضي الله عنه﴾ له حضرت رسول اکرم ﴿صلى الله عليه وسلم﴾ څخه روایت کړی دی چې ویې فرمایل:

**﴿من غدا إلى مسجد لايريد إلاّ ان يتعلّم خيرا أو يعلّمه كان له كأجر حاج تاماحجته﴾**(۷)

ژباړه: هر څوک چې جومات ته لاړ شي او د خیر وربنودلو او زده کړي پرته یې بل نیت نه وي د یوه پوره حج ثواب ورته ورکول کیږي.

له دې سره سره له هغه مجلسه لا نه وي ولاړ شوي چې ګناهونه یې په نیکۍ بدلیږي او پرېښتې یې تر خپلو وزرونو لاندې نیسي او الله تعالی ﴿جل جلاله﴾ یې هم د خپلو رحمتونو تر چتر لاندې نیسي.

**۴- په روژه کې عمره**

له عبدالله بن عباس ﴿رضي الله عنه﴾ څخه روایت دی چې رسول اکرم ﴿صلى الله عليه وسلم﴾ ام سنان انصاري ﴿رضي الله عنها﴾ ته وویل:

ولې له موږ سره حج ته نه وې تللې؟

---

۷- طبراني او حاکم.

ویې ویل:

مور، دوه اوښان لرل چې په یوه باندې مې مېړه او زوی حج ته تلل او بل د اوبو د راکښلو لپاره له غلام سره وو.

رسول اکرم ﴿ﷺ﴾ وویل:

نو د رمضان په میاشت کې عمره کول زما سره د حج په شان ده.

په یوه روایت کې راغلي چې ویې ویل:

د رمضان په میاشت کې عمره وکړه چې په دې میاشت کې عمره کول له حج سره برابره ده. (بخاري او مسلم)

له عمرې سره سره د هغو لمونځونو ثواب ته مو هم باید پام وي چې په مسجد الحرام کې یې کوئ.

## ۵- په مسجد کې د فرض لمونځونو کول

له حضرت ابوامامه ﴿رضي الله عنه﴾ څخه روایت دی چې رسول اکرم ﴿ﷺ﴾ وفرمایل:

﴿من مشی إلی صلاة مکتوبة في جماعة کحجّة، و من مشی إلی صلاة تطوع (یعني صلاة الضحی) فهي کعمرة نافلة﴾.(۸)

ژباړه: هر څوک چې د فرض لمانځه د ادا لپاره مسجد ته لاړ شي، نو لکه حج چې یې کړی وي، او هر څوک چې د نفلي (څاښت) لمانځه لپاره جومات ته لاړ شي لکه نفلي عمره چې یې کړې وي.

د ابي داود په روایت کې دي چې وایي:

---

۸- ابو داود او احمد

﴿من خرج من بيته متطهّراً إلى صلاة مكتوبة فأجره كأجر الحاجّ المحرم و من خرج إلى تسبيح الضحَى لاينصبه إلا إيّاه فأجره المعتمر و صلاة على إثر صلاة لالغو بينهما كتابٌ في علّيين﴾

ژباړه: هر څوک چې په پاکي سره له خپل کوره مسجد ته د فرض لمانځه د ادا کولو لپاره قدم واخلي. لکه احرام چې يې تړلى وي او حج ته ځي او څوک چې له خپل کوره د څاښت د لمانځه لپاره جومات ته لاړ شي او بل هدف ونلري لکه د عمرې لپاره چې يې احرام تړلى وي او د يوه لمانځه نه وروسته په داسي ډول د بل لمانځه کول چې په منځ کې يې ناوړه کار نه وي شوي په (عليين) کې ثبت کېږي.

په دې ډول که هر څوک پنځه ګوني لمونځونه په جماعت سره ادا کړي د پنځو حجونو ثواب ورته رسېږي او که د يوه کال لمونځونه په جماعت سره ادا کړي معنى دا چې يو زر او اته سوه حجونه يې کړي دي او که يې لس کاله يا زيات په جماعت سره ادا کړي خپله يې وانګېرئ چې د څومره حجونو ثواب به يې تر لاسه کړى وي.

### ۶- په قبأ مسجد کې لمونځ کول

له حضرت سهل بن حنيف ﴿رضي الله عنه﴾ څخه روايت دى چې رسول اکرم ﴿صلى الله عليه وسلم﴾ وفرمايل:

﴿من تطهّر في بيته ثمّ أتى مسجد قباء فصلّى فيه صلاةً كان له كأجر عمرة﴾ ترمذي

ژباړه: څوک چې په خپل کور کې ځان پاک کړي او بيا قبأ مسجد ته لاړ شي او هلته لمونځ وکړي د يوې عمرې ثواب ور کول کېږي.

دریم ډول

# آذان کول یا یې له مؤذن سره تکرارول

کوم فضیلتونه چې د جماعت د لمانځه په اړه وویل شول مؤذن پکې شامل دی او له هغوی سربېره نور اجر هم لري.

له برأ بن عازب ﴿رضي الله عنه﴾ څخه روایت دی چې رسول اکرم ﴿صلی الله علیه وسلم﴾ وفرمایل:

﴿إنّ الله و ملائکته یصلّون علی الصّف المقدّم و المؤذن یغفرله مدی صوته، و یصدقه من سمعه من رطب و یابس و له أجر من صلّی معه﴾ احمد او نسایي

ژباړه: بې شکه الله ﴿جل جلاله﴾ او ملائیکې په لومړي صف درود وایي او ترکومه چې د مؤذن غږ رسېږي هماغومره بښنه ورته کېږي او هر لوند او وچ موجود چې یې غږ واوري، تصدیق یې کوي او څومره اجر چې لمونځ کوونکو ته ورکول کېږي ده ته هم ورکول کېږي.

د همدې فضیلت له امله وو چې د رسول اکرم ﴿صلی الله علیه وسلم﴾ یوه صحابي د موذنانو په ځای او رتبه باندې غبطه وکړه لکه څنګه چې له عبدالله بن عمر ﴿رضي الله عنهما﴾ څخه روایت دی چې:

﴿إن رجلا قال : یا رسول‌الله صلی الله علیه وسلم إنّ المؤذنین یفضلوننا فقال ﷺ: قل کما یقولون، فإذا انتهیت فسل تعطه﴾

ژباړه: یوه کس وویل: اې د الله تعالی ﴿جل جلاله﴾ رسوله موذنانو له موږ څخه غوره والی وموند. رسول اکرم ﴿صلی الله علیه وسلم﴾ وویل: هغه څه چې دوی یې لولي ته هم ولوله او په پای کې یې دعا وکړه چې قبوله به شي.

دا صحابي د مؤذنانو د اجر او ثواب د تر لاسه کولو په لټه کې وو، رسول اکرم ﴿ﷺ﴾ ورته وویل چې د مؤذن کلمات تکرار کړي خو د ﴿حيّ على الصّلاة او حيّ على الفلاح﴾ په ځواب کې دي ﴿ولاحول و لاقوة إلاّ بالله﴾ وواېي تر څو د مؤذن په څېر اجر او ثواب تر لاسه کړي

نو اې مسلمانه وروره! فکر وکړه، که فرضاً ستاسو په جومات کې سل کسه لمونځ کوي او تا په خپل اذان سره را غوښتي وي، هغه ټول ثوابونه چې مخکې د جماعت د لمانځه په اړه تېر شول، په ځانګړي ډول د ماخوستن او سهار د لمانځه چې د ټولې شپې د قيام اجرونه لري، لکه څرنګه چې دوی هر يوه ته رسېږي، د ټولو مجموعه به يوازې تا مؤذن ته هم رسېږي له دې سربېره هغه مېرمنې چې په خپلو کورونو کې ستا د آذان په اورېدلو سره لمونځ کوي د هغوی په څېر ثواب تا ته هم رسيږي، همدارنګه که مسلمانه مېرمن خپل مېړه، اولادونه او محارم د جماعت لمانځه ته تشويق کړي، پورته ياد شوي ټول اجرونه ورته ورکول کيږي، ځکه چې رسول اکرم ﴿ﷺ﴾ فرمايلي دي:

﴿الدّال على الخير كفاعله﴾ احمد، ابوداود

(خير ته هڅوونکی داسې دی لکه کوونکی يې)

تاسو چې د آذان ځواب ورکوئ د مؤذن په شان د اجرونو او ثوابونو مستحق ګرځئ.

﴿هٰذَا مِن فَضْلِ رَبِّي﴾ نمل/۴۰

حتمي ده چې ياد شوي مليار دونه اجرونه به ځينې کسان حيران کړي.

بايد ووايو: چې اې مسلمانه د الله تعالى ﴿ﷻ﴾ د فضل او بښنې څخه تعجب مه کوه، ځکه هغه د بښنې او کرم اهل دی، خو د خپلې بې پروايی او تمبلی په اړه تعجب وکړه چې څنګه له دومره ستر خير څخه بې برخې يې.

# روژه

رسول اکرم ﴿ﷺ﴾ ټول مسلمانان د کال په جریان کې د نفلي روژو نیولو ته هڅولي دي، ځکه نو کولای شو په خاصو ورځو کې د روژې په نیولو سره خپل عمر څو کاله زیات کړو.

څو بېلګې یې په لاندې ډول دي:

## ۱ - په ځانګړو ورځو کې د روژو نیول

تاسو د رمضان د روژې پرته د (۴۲) روژو په نیولو سره د (۷۲۰) ورځو روژې نیولو ثواب ترلاسه کوئ، په دې ډول چې:

**الف:- د شوال د میاشتې شپږ ورځې روژې نیول**

لکه څنګه چې ابو ایوب انصاري ﴿رضي الله عنه﴾ د رسول اکرم ﴿ﷺ﴾ څخه روایت نقل کوي چې ویې فرمایل:

**﴿و من صام رمضان ثمّ أتبعه ستاً من شوال كان كصيام الدهر﴾**[۹]

ژباړه: هر څوک چې د رمضان روژې ونیسي او د شوال شپږ ورځې روژې ورپسې کړي، لکه ټول کال چې یې روژې نیولي وي.

**ب:- د سپینو ورځو (ایام بیض) روژې نیول**

د سپوږمیزو میاشتو د ۱۳، ۱۴ او ۱۵ ورځې چې سپوږمۍ پکې بشپړه وي او شپه رڼه وي د ایام بیض په نوم یادېږي. په دې اړه جریر بن عبدالله ﴿رضي الله عنه﴾ د حضرت رسول اکرم ﴿ﷺ﴾ ارشاد نقل کوي چې وایي:

---

۹- مسند احمد، مسلم

﴿صيام ثلاثة أيّام من كلّ شهر صيام الدّهر و أيّام البيض صبيحة ثلاث عشرة و أربع عشرة و خمس عشرة﴾([10])

ژباړه: په هره مياشت کې درې ورځې روژه نيول داسې دي لکه د ټول کال روژه نيول او ايام بيض د هرې مياشتې د (۱۳، ۱۴ او ۱۵) ورځو څخه عبارت دي.

د صحيح مسلم په روايت کې په کلي ډول د هرې مياشتې د دريو ورځو د روژې نيول راغلي دي.

نو که تاسو هر کال دا روژې ونيسئ، لکه دوه کاله چې مو روژې نيولې وي او په پای کې ستاسو په عمر څو کاله زياتيږي.

## ۲- روژه نيوونکو ته روژه ماتی ورکول

د شتمنو خلکو لپاره دا هم يوه اسانه لاره ده، څکه روژه نيونکو ته روژه ماتی ورکول په ځانګړي ډول د روژې په مياشت کې ددې سبب کيږي چې روژه ماتي ورکوونکی هم د روژه نيونکي په څير ثواب وګټي. په دې اړه د زيد بن خالد الجهني ﴿رضي الله عنه﴾ څخه روايت دي چې رسول اکرم ﴿ﷺ﴾ وفرمايل:

﴿من فطّر صائماً كان له مثل أجره، غير أنّه لاينقص من أجر الصّائم شيئاً﴾([11])

ژباړه: هر څوک چې روژه نيوونکي ته روژه ماتي ورکړي، هغه ته هم د روژه نيونکي په شان ثواب ورکول کيږي بې له دې چې د روژه نيوونکي د ثواب څخه څه کم شي.

---

[10]- نسايي او بيهقي

[11]- احمد، ابن ماجه، ترمذي

# د قدر شپه وينبه تېرول

الله تعالی (جَلَّ جَلَالُهُ) فرمايي:

﴿لَيْلَةُ الْقَدْرِ خَيْرٌ مِّنْ أَلْفِ شَهْرٍ﴾ قدر:۳

د قدر شپه له زرو مياشتو څخه غوره ده.

يعني د قدر د شپې د عبادت ثواب د ۸۳ کالو او درې مياشتو د عبادت څخه زيات دی.

که يو مسلمان ددې وس پيدا کړي چې شل کاله د قدر شپه په وينبه او عبادت تيره کړي، نو د هغه لپاره د (۱۶۶۶) کلونو د عبادت ثواب ورکول کېږي.

وګوره څومره زيات کلونه دي خپل عمر ته ور زيات شول ايا امکان لري په طبعي ډول دي يو تن دومره عمر ولري؟ نه هغه کس څومره بې برخې ده چې دومره ستره شتمني له لاسه ورکړي.

# جهاد

د الله تعالی په لار کې په ځان او مال باندي جهاد کول یو له هغو کارونو څخه دي چې د انسان عمر څو چنده زیاتوي

له عمر ابن حصین ﴿ﷺ﴾ څخه روایت دي چې رسول اکرم ﴿ﷺ﴾ وفرمایل:

﴿مقام الرّجل فی الصّفّ فی سبیل‌الله أفضل عندالله من عبادة رجل ستّین سنة﴾ (۱۲)

ژباړه: د هغه کس درجه چې د الله تعالی په لار کې د جهاد په صف کې ولاړ وي د الله تعالی ﴿ﷻ﴾ په وړاندي د شپېته کلونو عبادت څخه غوره ده.

همدارنګه سلمان فارسي ﴿ﷺ﴾ له رسول اکرم ﴿ﷺ﴾ څخه روایت کوي چې ویې فرمایل:

﴿من رابط یوماً و لیلةً فی سبیل‌الله کان له کأجر صیام شهر و قیامه و من مات مرابطاً أجری له مثل ذلک من الأجر و أجری علیه الرّزق و أمن من الفتّان﴾ مسلم

ژباړه: هر څوک چې یوه شپه او ورځ د الله تعالی ﴿ﷻ﴾ په لار کې پیره داري وکړي د هغه لپاره د یوې میاشتې روژې او د شپې د قیام اجر دی، او که څوک په هغه حال کې مړ شي اجر به یې د تل لپاره وي او د خدای ﴿ﷻ﴾ له لوري به د هغه لپاره روزي وي او د قبر له فتنې څخه به په امان کې وي.

۱۲- دارمي له صحیح سیوطي سره په جامع الصغیر کې.

اووم ډول

# د ذالحجې په لسو ورځو کې ښه کارونه کول

د ذالحجې په لومړۍ لسیزه کې د ښو کارونو کول په ځینو مواردو کې ان تر جهاد هم غوره دی.

ابن عباس ﴿رضي الله عنه﴾ روایت کوي چې رسول اکرم ﴿ﷺ﴾ وفرمایل:

﴿ما من أيّام العمل الصّالح فيهنّ أحبّ إلى الله من هذه الايام العشر فقالوا : يا رسول الله صلى الله عليه وسلم! و لاالجهاد فى سبيل‌الله؟ فقال : رسول الله صلى الله عليه وسلم : و لاالجهاد فى سبيل‌الله إلاّ، رجلٌ خرج بنفسه و ماله، ولم يرجع من ذلك بشىء﴾[۱۳]

ژباړه: په ټول کال کې داسې ورځې نشته چې په هغوی کې ښه کار کول الله تعالی ته له دې لسو ورځو څخه ډېر محبوب وي پوښتنه يې وکړه: حتی دالله په لار کې جهاد هم؟ رسول الله وویل: هو، د الله تعالی په لار کې جهاد هم خو دا چې یو کس له ځان او مال سره د خدای په لار کې ووزي، نه خپله راوګرځي او نه يې مال.

---

۱۳- صحیح بخاري، ترمذي

# تلاوت او د يو شمېر سورتونو ويل

که وغواړئ چې ټول قران کريم تلاوت کړئ نو بايد څو ورځې وخت ورکړئ، خو د رسول اکرم ﴿ﷺ﴾ د هداياتو مطابق کولای شئ په څو شېبو کې د قران ديو يا څو ځلي ختم ثواب تر لاسه کړئ.

له حضرت ابو سعيد خدري ﴿رضي الله عنه﴾ څخه روايت دي چې رسول اکرم ﴿ﷺ﴾ خپلو ملګرو ته وويل:

﴿أيعجز أحدكم أن يقرأ بثلث القرآن فی ليلة؟ فشقّ ذلک عليهم و قالوا : أيّنا يطيق ذلک يا رسول‌الله صلى الله عليه وسلم؟ فقال : «الله الواحد الصّمد ثلث القرآن﴾ (۱۴)

ژباړه: آيا کولای شئ د قران کريم دريمه برخه په يوه شپه کې تلاوت کړئ؟ اصحابو ته سخته ښکاره شوه او ويې ويل: څوک کولای شي داسې وکړي؟ رسول اکرم ﴿ﷺ﴾ وويل: قل هو اللهُ احد د قران کريم دريمه برخه ده.

په بل حديث کې ابن عمر ﴿رضي الله عنه﴾ وايي چې رسول اکرم ﴿ﷺ﴾ وفرمايل:

﴿قل هوالله أحد، تعدل ثلث القرآن، و قل يا أيّها الکافرون تعدل ربع القرآن﴾

ژباړه: قل هو الله احد د قران کريم دريمه برخه ده او قل ياايها الکافرون د قران کريم څلورمه برخه ده.

---

۱۴- بخاري، احمد ، مالک

کېدای شي موږ پخوا لا دا حدیث اورېدلی وي خو دومره مو په وس کې نه وي شوي چې یاد سورتونه په ورځ کې څو ځله ووایو او د قران کریم د څو ختمونو ثواب تر لاسه کړو. هغه هم په څو شېبو کې، د علم د زده کړې څخه هدف باید د عمل تر لاسه کول وي، نه د معلوماتو زیاتول.

# زيات ذکر کول

د الله تعالی ذکر کول د بې شمېره نېکيو درياب دی خو بدبختانه ډېری خلک ورنه بې برخې دي په احاديثو کې د ډېرو اذکارو يادونه شوې ده خو موږ ورنه دوه نمونې يادوو.

## ۱- ګټور تسبيحات

له حضرت ام المؤمنين جويريې (رضي الله عنها) څخه روايت دی چې سهار مهال رسول اکرم (ﷺ) له کوره ووت او زه د لمانځه په ځای ناسته وم. هغه مبارک د څاښت د لمانځه د ادا کولو څخه وروسته بېرته کور ته راغی، ويې ليدل چې زه په هماغه ځای باندې ناسته يم ويې ويل:

له هغه وخته چې زه د باندې ووتم تر اوسه دلته ناسته يې؟

ومې ويل: هو.

هغه (ﷺ) وفرمايل: ما له تا وروسته درې ځلې څلور کلمې وويلې چې که ستا له ټولو هغو سره چې له سهاره دي ويلې وتلل شي درنې به وي او ډېر اجر به ولري چې عبارت دي له:

﴿ سُبْحَانَ اللَّهِ وَبِحَمْدِهِ، عَدَدَ خَلْقِهِ وَرِضَا نَفْسِهِ وَزِنَةَ عَرْشِهِ وَمِدَادَ كَلِمَاتِهِ ﴾ (۱۵)

---

۱۵- مسلم

وګورئ چې رسول اکرم (ﷺ) څومره لنډه او د ډېر اجر لرونکي ذکر موږ ته ښوودلی دی چې عبارت یې لنډ او په کم وخت کې کیږي.
آیا دا ښه کار دی چې موږ له دومره جامع ذکر څخه او له دومره سترو خزانو څخه بې برخي واوسو؟
ښه نه ده چې د بې کاره او پلیتو سندرو په ځای خپله ژبه د الله (جل جلاله) په ذکر لنده وساتو؟

همدارنګه له حضرت ابو امامه (رضي الله عنه) څخه روایت دي چې رسول اکرم (ﷺ) د شونډو د ښورولو پرمهال ولیدم ویې ویل:
اې ابو امامه څه وایې؟
ومي ویل دالله تعالی ذکر کوم. ویې ویل: ایا داسي ذکر درته وښیم چې د شپې او ورځې د ذکرونو څخه دي غوره وي؟ بیا یې وویل: ووایه
﴿الحمدالله عدد ما خلق و الحمدلله ملء ما خلق و الحمدلله عدد ما فی السّموات و الأرض و الحمدلله ما أحصی کتابه، و الحمدلله ملء ما أحصی کتابه و الحمدلله عدد کلّ شیء و الحمدلله ملء کلّ شیء﴾(۱۲)
او د الله تعالی تسبیح هم په همدې ترتیب ووایه
بیا یې وویل: دا یاد کړه او نورو ته یې هم وروښیه
دا تاسو او دا هم د رسول اکرم (ﷺ) حدیث او زیات ثواب او فضیلت یې. چې د یوځل ویلو ثواب یې د شپې او

۱۲- حاکم

ورځې د تسبیح د ثواب څخه زیات دی په دې هیله چې د رسول الله ﴿ﷺ﴾ د وینا مطابق یې موږ زده او نورو ته یې هم وروښیو.

## ۲- ګټور استغفار

ګرانه وروره! دا خوښوې چې په یوه ورځ کې دې یو میلیون نیکۍ د خپلو اعمالو کتاب ته ور زیاتې شي؟ البته یوه ورځ هم زیاته ده. نظر دې څه دی که دومره زیاتې نیکۍ په څو شېبو او د یوې جملې په ویلو سره لاس ته راوړې؟

ایا حاضر یې چې دا جمله څو ځله تکرار کړې او هر ځل دې دا ټولې نیکۍ د اعمالو په کتاب کې ولیکل شي؟

اوس دا ګټه او تجارت ستاسو په وړاندې ایښودل کیږي رښتیا باید لټي ونه کړئ او له خپل رب سره له دې یوې ګټې او تجارت څخه ښایې لاس وانخلئ.

له عباده بن صامت ﴿رضي الله عنه﴾ څخه روایت دي چې رسول اکرم ﴿ﷺ﴾ وفرمایل:

﴿من إستغفر للمؤمنين و المؤمنات كتب الله له بكل مؤمن و مؤمنة حسنة﴾ (۱۷)

ژباړه: هر څوک چې د مؤمنو نرانو او ښځو لپاره بښنه وغواړي، الله تعالی د هر یوه په سر دده لپاره نیکي لیکي.

۱۷- طبراني

# د خلکو د ضرورتونو پوره کول

ځینو کسانو ته الله تعالی ﴿جل جلاله﴾ مال او شهرت ورکړي، خو کله چې نور کسان د خپلو ضرورتونو د پوره کولو لپاره ورځي، نو مزاحمت یې بولي او په قهر کیږي، خو له دې څخه نه دي خبر چې که څوک د بل مسلمان د مشکل په لټه کې شي الله تعالی ﴿جل جلاله﴾ به د ده مشکل حل کړي او هر هغه وخت الله تعالی له خپل بنده سره مرسته کوي چې بنده یې د بل مسلمان ورور اړتیا پوره کړي، مثلاً څه شی ور زده کړي او یا رهنمایي ورته وکړي یا یې په خپل سپرلي سپور کړي یا قرض ورکړي، یا د نیک کار د کولو ورته ووایي. دا کار د الله په وړاندې ستاسو لپاره د یوې پوره میاشتې اعتکاف څخه غوره دی. لکه څنګه چې د عبدالله بن عمر ﴿رضي الله عنهما﴾ څخه روایت دي چې رسول اکرم ﴿صلی الله علیه وسلم﴾ وفرمایل:

﴿أحبّ النّاس إلى الله أنفعهم و أحبّ الاعمال إلى الله عزّوجل سرور تدخله على مسلم أو تكشف عنه كربة، أو تقضى عنه ديناً، أو تطرد عنه جوعاً ولان أمشى مع أخى المسلم فى حاجة أحبّ إلى من أن أعتكف شهرا و من كف غضبه ستر الله عورته، و من كظم غيظاً و لو شاء أن يمضيه أمضاه، ملأ الله قلبه رضا يوم القيامة، و من مشى مع أخيه المسلم فى حاجته حتّى يثبتها له أثبت الله تعالى

قدمه یوم تزل الاقدام، و إن سوء الخلق لیفسد العمل کما یفسد الخل العسل﴾(۱۸)

ژباړه: په تاسو کې د الله تعالی (ﷻ) په وړاندې تر ټولو غوره هغه کس دی چې د الله (ﷻ) د مخلوق لپاره په ګټه وي. د الله په وړاندې تر ټولو غوره کار د مسلمان د زړه خوشحالول دي. یا یې خفګان ورک کړي او که زه له خپل مسلمان ورور سره د هغه د کومې ستونزې د اوارولو لپاره لاړ شم د یوې میاشتې اعتکاف څخه راته غوره دي او هر څوک چې خپل قهر غلی کړي الله تعالی به یې رازونه پټوي او څوک چې د قهرجنو کړنو د تر سره کولو توان ولري خو کابو یې کړي نو الله تعالی به یې په قیامت کې زړه خوشحاله او له خوښې ډک کړي او که څوک له خپل مسلمان ورور سره د اړتیا د پوره کولو لپاره لاړ شي، نو الله تعالی به یې په هغه ورځ قدمونه ټینګ کړي په کومه ورځ چې قدمونه لړزیږي او خبر اوسئ چې بد اخلاق نېک اعمال داسې خرابوي لکه سرکه چې عسل خرابوي.

وروره ! که غواړې چې یوه میاشت اعتکاف وکړې باید له خپل اماره نفس سره دي ډغرې ووهې، کارونه دې پرېږدې او پوره میاشت په مسجد کې کښېنې او په ذکر، تسبیح، تلاوت او لمانځه باندې مصروف شې، خو که څو دقیقې د خپل مسلمان ورور یا کونډې خور د اړتیاوو د پوره کولو لپاره ځان مصروف کړې، نو د پوره یوې میاشتې اعتکاف او عبادت ثواب درته لیکل کیږي.

---

۱۸- طبراني

څکه نو ډېره غوره ده چې لږ وخت د خپلو مسلمانو ورونو د اړتیاوو د پوره کولو لپاره ځانګړې کړو او د هغوی د خدمت کولو موقع له لاسه ورنه کړو.

# همېشنی کړني
# هغه اعمال چې د مرګ وروسته یې هم ثواب باقي وي

هغه څه چې په اوله برخه کې ولیکل شول، که څه هم ډېر ثواب یې درلود، خو ثواب یې د انسان د مرګ په راتلو سره قطع کیږي، ځکه نور نو هغه د لمونځ کولو، روژه نیولو، حج کولو، تلاوت کولو، تسبیح ویلو، علم کولو او د خلکو د ضرورتونو د پوره کولو وړتیا نه لري. د اولې برخې په لوستلو سره پوه شوو چې زموږ عمر خورا زیاته ګټه کوي او د الله تعالی په وړاندې مو نیکۍ د خپل عمر څو چنده زیاتیږي. اړینه ده یو شمیر داسې کارونه وکړو چې ثواب یې زموږ له مرګ وروسته هم دوام ولري او زموږ د اعمالو په کتاب کې ولیکل شي.

له حضرت ابو امامه باهلي ﴿رضي الله عنه﴾ څخه روایت دی چې حضرت رسول اکرم ﴿صلی الله علیه وسلم﴾ وفرمایل:

﴿أربعة تجری علیهم أجورهم بعد الموت : رجل مات مرابطاً فی سبیل الله و رجل علّم علما فأجره یجری ماعمل به ورجل أجری صدقةً فأجرها یجری علیه و رجل ترک ولداً صالحاً یدعوله﴾ (۱۹)

۱۹- احمد

ژباړه: څلور کارونه داسې دي چې ثواب يې له مرګه وروسته هم دوام لري:

۱-هغه کس چې د الله تعالی (ﷻ) په لاره کې پيره کوي او مړ شي.

۲-څوک چې چا ته علم ور زده کړي، تر هغه چې عمل ورباندې کيږي، ده ته يې ثواب رسيږي.

۳-هغه کس چې د جاريه صدقې بنسټ کيږدي، تر څو چې صدقه شتون لري ده ته يې ثواب رسيږي.

۴-هغه کس چې صالح اولاد پريږدي او د ده له مرګه وروسته يې په حق کې د خير دعا وکړي.

نو اې مسلمانه وروره! هڅه وکړه له دې څلورو کارونو څخه يو ازې يو هم تر سره کړه، چې له مرګه وروسته يې ګټه در ته ورسيږي، د اعمالو کتاب دې په خپل مرګ سره ونه تړل شي بلکې همداسې خلاص وي او نوري نيکۍ هم پکې ثبت شي.

# د خدای په لار کې پیره کول

له حضرت سلمان فارسي ﴿رضي الله عنه﴾ څخه روایت دي چې رسول اکرم ﴿صلی الله علیه وسلم﴾ وفرمایل:

﴿من رابط یوماً فی سبیل‌الله کان له کأجر صیام شهر و قیامه و من مات مرابطاً جری له مثل ذلک من الأجر و أجری علیه الرّزق و أمن من الفتّان﴾[۲۰]

ژباړه: هرڅوک چې یوه ورځ د خدای ﴿جل جلاله﴾ په لار کې پیره وکړي لکه یوه میاشت چې یې روژه نیولې وي او د شپې لمونځ یې کړی وي او که په دې حال کې مړ شي له دې سره سره د الله له لوري ورته روزي ورکول کیږي او د قبر له فتنو څخه به خوندي وي.

۲۰- مسلم

# جاري صدقه

جاري صدقه له هغې صدقې څخه عبارت ده چې ثواب يې د ډېرو کلونو لپاره جاري وي، لکه د څاه کيندل، د مسجد جوړول، د ونو کرل او وقف کول، خلکو ته د اوبو ورکول، په مسجدونو او عمومي ځايونو کې د اوبو د سړوونکو اېښودل، دعامه کتابتونونو جوړول او داسې نور.

له حضرت ابو هريره ﴿رضي الله عنه﴾ څخه روايت دي چې رسول اکرم ﴿صلى الله عليه وسلم﴾ وفرمايل:

﴿إنّ ممّا يلحق المؤمن من عمله و حسنات بعد موته علماً و نشره و ولداً صالحاً تركه، و مصحفاً ورّثه أو مسجداً بناه، أو بيتاً لابن السّبيل بناه أو نهراً أجراه، أو صدقةً أخرجها من ماله في صحّته و حياته يلحقه من بعد موته﴾[۲۱]

ژباړه: د هغو نيکيو له جملې څخه چې انسان ته يې له مرګه وروسته هم ثواب رسيږي، خلکو ته د علم ورښودل او نشرول، د نېک زوی پرېښودل، په ميراث کې د قرآن کريم پرېښودل او يا د مسجد جوړول، د مسافر لپاره کور جوړول، ويالې جاري کول، يا د ژوند او روغتيا په مهال صدقه کول هغه څه دي چې له مرګه وروسته له هغه سره يو ځای کېږي.

---

۲۱- ابن ماجه

# د نیک اولاد روزل

د مسلمان لپاره نیک اولاد د هغه د عمر مېوه او د نیکیو ادامه ده چې له مرګه وروسته ورته رسیږي.

له حضرت ابو هریره «رضی الله عنه» څخه روایت دی چې رسول اکرم «صلی الله علیه وسلم» وفرمایل:

**«إذا مات الإنسان انقطع عنه عمله إلا من ثلاثةٍ إلا من صدقة جاريةٍ أو علم ينتفع به أو ولد صالحٍ يدعو له»** ([۲۲])

ژباړه: کله چې انسان مړ شي له دري شیانو پرته یې نور عملونه قطع کیږي:

۱- صدقه جاریه ۲- هغه علم چې ګټه ورنه واخستل شي.
۳- نیک اولاد چې دعا ورته وکړي.

همدارنګه رسول اکرم «صلی الله علیه وسلم» فرمایي:

**«إنّ الله عزّوجل ليرفع الدّرجة للعبد الصّالح فى الجنّة فيقول: أى ربّ أنّى لى هذه فيقول باستغفار ولدک لک»**

ژباړه: بیشکه الله تعالی «جل جلاله» د خپلو بندګانو څخه د یوه درجه په جنت کې لوړوي، هغه بنده پوښتنه کوي: اې زما ربه! دا مرتبه څنګه ماته ورسېده. الله تعالی ورته فرمایي: د هغه استغفار له امله چې زوی دي تاته کړی دی.

---

[۲۲] - صحیح مسلم

# خلکو ته د علم ور زده کول

خلکو ته د علم ور زده کول نه یوازي جاري صدقه ده بلکي غوره ډول یې هم دی.

د علم د نشرولو تر ټولو غوره لار دعوت الی الله دی چې الله تعالی ته په نږدې والي کې تر نورو اعمالو ډېر اغېزمن دی.

د رسول الله د وینا مطابق «د ښه کار ښوونکی داسي دی لکه د هغه کوونکی».

که څوک ستا د لارښوونې په اساس د الله تعالی (ﷻ) لار ته راغی او هغه یې ټینګه کړه، لمونځ، ذکر او نور ښه کارونه چې کوي په هماغه اندازه یې تا ته هم اجر رسېږي او که هغه ستا په خبر نور کسان هم د الله تعالی (ﷻ) لار ته دعوت کړي هغوی چې دعوت ومنې او توبه وباسي دا ټول ستا د نیکو کارونو په کتاب کې لیکل کیږی، ان که ته مړ او په قبر کې هم یې.

حضرت ابو هریره (رضي الله عنه) د رسول اکرم (ﷺ) ارشاد نقل کوي:

«من دعا إلى ضلالة كان عليه من الإثم مثل آثام من تبعه، لاينقص من آثامهم شيئاً» (۲۳)

۲۳- بخاري، مسلم

ژباړه: هر څوک چې د بدي لور ته دعوت وکړي، د پیروي کوونکو په څیر يې دده هم ګناه ده،او د هغوی له ګناهونو څه شی نه کمیږي.

اې ګرانه مسلمانه احاضر يې د لوی خدای (ﷻ) له دې بې حسابه ثوابونو څخه ځان برخمن کړې؟

نو د همت لستوني را بډ وهه او هڅه وکړه !

والسلام علیکم

د ژباړې پای

غزنی قره باغ

۱۳۹۲/اسد/څلورم

د روژې مبارکې اوولسمه ورځ.